# هیواد

ورځپانه

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسیس کال۱۳۲۸ لمریز | **دوشنبه د شعبان المعظم۴مه ۱۴۴۶ق کال،** دسلواغې۱۵ مه ۱۴۰۳ ل کال، دفبروری۳یمه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه۵۳۴ مه، پرله پسې ګڼه۶۲۴ مه، اتمه دوره


## بغلان کې د صنعتي ښارګوټي لپاره ۱۰۰۰جریبه ځمکه بېله شوه

د بغلان په مرکزي بغلان ولسوالۍ کې د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله) د ځانګړي فرمان له مخې د صنعتي ښارګوټي لپاره زر جریبه ځمکه ځانګړې شوه.

د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مطبوعاتي مسئول ولي امرخیل باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې ټاکل شوي پلاوي د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالي د حکم پر اساس د بغلان ولایت د مرکزي بغلان په چمقلا سیمه کې د صنعتي ښارګوټي د جوړېدو لپاره ۱۰۰۰ جریبه ځمکه ځانګړې او تثبیت کړې ده.

د یادونې وړ ده، چې په دې وروستیو کې د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې د صنعتي ښارګوټو د جوړولو لپاره د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله) د ځانګړي فرمان پر اساس زرګونه جریبه ځمکه ځانګړې شوې ده، چې د داخلي تولیداتو د زیاتېدو او اقتصادي پرمختګ لپاره یو مهم ګام ګڼل کېږي.

## سږ کال د منځنۍ آسیا هېوادونو ته د ۱۱۲میلیونو ډالرو په ارزښت صادرات شوي

صنعت اوسوداګرۍ وزارت وایي: د روان لمریز کال په لومړیو لسو میاشتو کې یې د منځنۍ آسیا هېوادونو سره د یو میلیارد او ۶۹۶ میلیونو ډالرو په ارزښت سوداګریزه راکړه ورکړه کړې.د صنعت او سوداګرۍ وزارت ویاند اخوندزاده عبدالسلام جواد ویلي: په دې سوداګریزه راکړه ورکړه کې د ۱۱۲ میلیونو ډالرو په ارزښت د افغانستان وچه او تازه میوه، تالک، جوس او طبي بوټي دغو هېوادونو ته صادرشوي دي.بله خوا بیا یو شمېر سوداګر او صنعتکاران وایي؛ منځنۍ آسیا د افغانستان د صادراتو او سوداګرۍ لپاره ښه مارکیټ لري او په وینا یې چې د ستراتیژیکې سوداګرۍ د پیاوړتیا په صورت کې به د هېواد اقتصاد پر پښو ودرېږي.

دا په داسې حال کې ده، چې د صنعت او سوداګرۍ وزارت څو ورځې وړاندې د روسیې هېواد سره هم د روان لمریز کال په لړ کې د ۱۷۴ میلیونو امریکایي ډالرو په ارزښت د سوداګریزې راکړې ورکړې خبر ورکړی و.

## خلیفه سراج الدین حقاني د علي رضا اساهي کورنۍ سره خواخوږي او نغدي مرسته وکړه



د کورنیو چارو وزارت ویاند عبدالمتین قانع ویلي: د کورنیو چارو د وزیر خلیفه سراج الدین حقاني په لارښوونه یو پلاوی د بدن د ښکلا د ملي لوبغاړي علي رضا اساهي کورنۍ ته ورغلی او خواخوږي یې ورسره کړې ده. ښاغلي قانع ویلي، د کورنیو چارو وزیر د خواخوږۍ ترڅنګ د اساهي کورنۍ...**۳مخ**

## چابهار بندر افغان پانګوالو او سوداګرو ته ارزانه او ګټوره لاره ده

د ایران سیستان او بلوچستان ولایت د بندرونو او سمندري چارو د تنظیم رئیس، ایراني رسنیو ته ویلي، د ایران په سوېل کې پروت چابهار بندر د افغانستان په ګډون یو شمېر هېوادونو ته له ټولو ارزانه، چټکه او ګټوره لاره ده.قاسم عسکري نسب زیاته کړې: دغه ستراتیژیک بندر د هند اوبو ته د لاسرسي ترڅنګ د ټرانزیټ، سوداګرۍ، ټرانسپورټ او د سمندر له لارې د لېږد را لېږد له ټولو مناسبه لاره ده.ده زیاته کړې: ((د ایران په سوېل کې د چابهار ستراتیژیک بندر د ایران، منځنۍ آسیا او په ځانګړې ډول د افغانستان ترمنځ د سوداګرۍ په برخه کې ځانګړې ارزښت لري. دغه بندر د ۸ میلیونو او ۵۰۰ زرو ټنه توکو د تخلیې او بارولو ظرفیت په لرلو سره د افغان سوداګرو او پانګوالو لپاره ښه فرصت رامنځته کوي.))عسکري...**۳مخ**



## له هرات ښار څخه د خښتو بټۍ ولسوالیو ته لېږدول کېږي

د هرات د چاپېریال ساتنې ریاست مسئولین وایي، چې د هرات ښار د خښتو بټیو مالکانو ته یې خبر ورکړی، چې خپلې بټۍ ولسوالیو ته ولېږدوي.د یاد ریاست د مسئولینو په وینا، د خښتو بټیو مالکان لس ورځې وخت لري، ترڅو له ښارڅخه د خښتو بټۍ ولسوالیو ته ولېږدوي.د چاپېریال ساتنې ریاست رئیس عبدالعلي متقي وایي، چې د یاد ولایت انجیل او ګذرې ولسوالیو کې هم د ۸۵ د خښتوبټیو فعالیت درول شوي.د نوموړي په وینا، د خښتو دغه بټۍ، به د زنده‌جان...**۳مخ**

## فراه کې د لویو مسافر وړونکو موټرو د ګړندي تګ د کنټرول لپاره اقدامات پیل شول

د فراه د ځمکني ټرانسپورټ د تنظیم ریاست مسئولین وایي، چې په دې ولایت کې د لویو مسافر وړونکو موټرو د ګړندي تګ د کنټرول په موخه اړین ګامونه پورته شوي دي.د یاد ریاست رئیس مولوي سید احمد ساجد باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، ټول هغه مسافر وړونکي موټر چې له دې ولایت څخه نورو ولایتونو ته مسافر لېږدوي، د مسئولینو له خوا کنټرولېږي او له سرغړوونکو سره قانوني چلند کېږي.نوموړي زیاته کړه، چې موټر چلوونکي لومړی د عامې روغتیا ریاست ته ور پېژندل کېږي، چې د دوی روغتیایي وضعیت وارزول شي او د بشپړې روغتیایي ارزونې او د موټر چلونې د اجازې له ترلاسه کولو وروسته د موټرو اشترینګونه د ۱۰۰ په شاوخوا کې قید کېږي، ترڅو...**۳مخ**



## د ډالرو پر وړاندې د افغانیو ارزښت بېرته په لوړېدو دی

د افغانستان په بازارونو کې د ورکړل شویو شمېرو له مخې، تېره اونۍ د افغانیو پر وړاندې د یوه ډالر بیه له ۸۱.۵۰ افغانیو څخه ۷۳.۲۹ افغانیو ته راټیټه شوې. د خپرو شویو شمېرو مطابق د روانې سلواغې میاشتې په ۷مه نېټه د افغانستان پولي بازارونو کې ډالر په ۸۱.۵۰ افغانۍ تبادله کېده، په داسې حال کې چې د افغانستان بانک په خپل نوي راپور کې ویلي، چې د ډالرو بیه ۷۳.۲۹ افغانیو ته را ټیټه شوې. د ډالرو پر وړاندې د افغانیو بیه داسې مهال را ټیټېږي، چې د افغانستان بانک مسئولینو ویلي و، د ډالرو بیې لوړوالی د هېواد په اقتصاد پورې اړه نه لري او د اندېښنې وړ مسئله نه ده.



## د «الصَّحَابَةُ في أفغانستان» کتاب مخکتنه وشوه

**مهاجر فراهي:** د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د ټولو لیکوالو او ادیبانو ګډ آدرس دی او د هغوی پوره ملاتړ کوي

**مولوي عتیق الله عزیزي:** موږ باید د خپلو اتلانو داستانونه راتلونکو نسلونو ته ورسوو

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو معینیت اړوند د بیهقي کتاب خپرولو ریاست له لورې، پرون د «الصَّحَابَةُ في أفغانستان» کتاب مخکتنه وشوه. په کابل کې په همدې مناسبت جوړه شوې غونډه کې چې د بېلابېلو امارتي ادارو مسئولینو او د هېواد یو شمېر لیکوالانو، ادیبانو او فرهنګیانو ګډون کړی و؛ د «الصَّحَابَةُ في أفغانستان» کتاب مؤلف مفتي محمد شریف راشد، د دې کتاب د محتویاتو په اړه معلومات ورکړل او د اطلاعاتو اوفرهنګ وزارت څخه یې د خپل کتاب د چاپولو او له لیکوالو او ادیبانو څخه د ملاتړ په خاطر قدرداني وکړه.

دغه راز، د اطلاعاتو...**۳مخ**


کتاب یجمع تراجم (٢٤) من الصحابة الکرام الذین رحلوا من بلاد الأفغان وآمنوا بسید البشر ، أو نزلوا هذه البلاد دعاة وغزاة فاتحین

تألیف/المفتي محمد شریف راشد




### د ولس ملاتړ؛ د هیواد د پرمختګ ضامن

۲مخ

### د اسلامي نظام ساتنه - شرعي مکلفیت، تاریخي ضرورت او اجتماعي مسئولیت

۲مخ

## د چاپېریال ساتنې ملي اداره: د هوا د ککړتیا د مخنیوي لپاره مو پر یو شمېر طرحو کار کړی

د چاپېریال ساتنې ملي اداري د حکومت د اطلاعاتو او رسنیو په مرکز کې د هوا د ککړتیا د مخنیوي په تړاو جوړې شوې غونډې ته په وینا کې د یادې ادارې مسلکي او د پالیسي معین مولوي زین العابدین عابد وویل: د کابل ښار چې له شپږو میلیونو څخه زیات نفوس لري، یو له هغو محدودو ښارونو څخه دي چې په دوو لسیزو کې د چاپېریال ساتنې د معیارونو او د قوانینو له تطبیق څخه پرته یې پراختیا موندلې ده او همدا لامل شوی چې د کابل ښار اوسېدونکي له چاپېریالي ستونزو سره مخامخ شي. د ځمکې لاندې اوبو ککړتیا، د ښاري شنو ساحو کمښت، د ښاري فاضلابو او کانالیزاسیون سیستم نشتوالي، اقتصادي ستونزې، د بدیل یا پاکې انرژۍ کمې، د وسایطو او زړو موټرو زیاتوالي او دې ته ورته نورې هغه لویې ستونزې دي چې اسلامي امارت ته له تېر څخه...**۳مخ**



## سرلیکنه

### د ولس ملاتړ؛

## د هیواد د پرمختګ ضامن

هر ملت چې له خپل حکومت سره ولاړ وي، د پرمختګ، ثبات او هوساینې ژوند ته رسېږي. د نړۍ پرمختللي هېوادونه د خپلو حکومتونو د ملاتړ، ملي یووالي او ګډو هڅو له برکته پرمختګ ته رسېدلي دي. برعکس، هغه ملتونه چې د خپلو حکومتونو ملاتړ نه کوي، د بې‌ثباتۍ، شخړو او وروسته‌پاتېوالي ښکار کېږي.

افغانستان، چې لسیزو جګړو ځپلی و، د اسلامي امارت تر حاکمیت لاندې ثبات ته رسېدلی. جګړې او ناامنۍ، چې زموږ هېواد یې له پرمختګه شاته غورځولی و، پای ته رسېدلي او افغانان نن سبا د داډمن ژوند سا اخلي. دا ثبات د الله تعالی یو لوی نعمت دی، چې ساتل یې زموږ د ټولو ګډ مسئولیت دی. د دې لپاره اړینه ده چې افغان ملت د خپل حکومت ملاتړ وکړي او اجازه ورنه کړي چې یو ځل بیا هېواد د بدمرغیو پر لور لاړ شي.

د اسلامي امارت مسئولیت هم دا دی چې د ولس روا غوښتنو ته پاملرنه وکړي، داسې پالیسۍ جوړې کړي چې د عدالت، ټولنیزې هوساینې او اقتصادي ودې لامل شي. حکومت او ملت د یوې سکې دوه مخونه دي؛ که ملت له حکومت سره مرسته وکړي، حکومت به د ملت اړتیاوې پوره کړي او که حکومت د ملت ستونزو ته حللارې پیدا کړي، ملت به یې لا ډېر ملاتړ وکړي. دا دوه اړخیز اعتماد هغه بنسټ دی چې افغانستان د تلپاتې ثبات او پرمختګ پر لور بیولی شي.

دیني ارزښتونه، ملي یووالی، اقتصادي پراختیا، عدل او ټولنیزه هوساینه هغه عناصر دي چې د یو ځواکمن افغانستان لپاره اړین دي. که حکومت او ولس دواړه په ګډه د دې اصولو ساتنه وکړي، نو افغانستان به نه یوازې د سیمې، بلکې د ټولې نړۍ لپاره د ثبات او پرمختګ یو بریالی مثال وي. افغان ملت باید د خپل هېواد د لا ښې راتلونکې لپاره همکار پاتې شي او اسلامي امارت باید د ملت د هوساینې لپاره داسې ګامونه پورته کړي چې ټول افغانان پکې خپل ځان ووینې. پایله دا ده چې د ولس ملاتړ د هر حکومت د بقا، ثبات او بریا ضمانت دی. که موږ یو موټی پاتې شو، د اسلامي ارزښتونو او ملي ګټو په رڼا کې حرکت وکړو، او د خپل حکومت پیاوړتیا ته کار وکړو، نو افغانستان به د هوساینې، پرمختګ او عزت لاره خپله کړي. دا زموږ ګډ مسئولیت دی او تاریخ به د هغو کسانو نومونه په ښه یاد وساتي، چې د خپل هېواد د ودې لپاره مخلصانه هلې ځلې کوي.

# د اسلامي نظام ساتنه - شرعي مکلفیت، تاریخي ضرورت او اجتماعي مسئولیت

محمد قاسم عزام

اسلامي نظام یوازې یو حکومتي جوړښت نه دی، بلکې د اسلام د تطبیق، عدالت، او دیني ارزښتونو د پلي کولو لپاره الهي وسیله ده. دا هغه نعمت دی چې امت یې د ترلاسه کولو لپاره حیرانوونکې قربانۍ ورکړې. چنار چنار ځوانۍ د دې نظام په ارمان قربان شوې، د شهیدانو پاکې وینې د دې نظام د بنسټ ډبرې شوې، کورونه وران شول، ودونه ښمار شول خوښۍ په ویر بدلې شوې، جنازې ښمار شوې، خو مؤمن ولس د خپلې عقیدې، دین او ارزښتونو د حاکمیت لپاره له هېڅ راز قربانۍ دریغ ونه کړ. اوس چې دا ستر هدف ترلاسه شوی، د دې ساتنه تر هر څه مهمه ده، ځکه چې که خدای مکړه، نظام زیانمن شي، نه به شریعت حاکم پاتې شي، نه به عدل او نه به د دې ملت یووالی او اتفاق.

شریعت موږ ته د اسلامي نظام د ساتنې امر کوي، ځکه چې عدالت، امن او د دیني احکامو تطبیق یوازې د قوي، ثابت او باارادې اسلامي نظام له لارې ممکن دی. که نظام ونه ساتل شي، نو د شرعي حدودو نفاذ به له خنډونو سره مخ شي، د مظلومانو حقونه به ضایع شي او اسلامي ارزښتونه به کمزوري شي. تاریخ شاهد دی چې د هر قوي اسلامي دولت ساتنه د مؤمنانو ستر مسؤلیت ګڼل شوی او د هغه تضعیف یا ړنګېدل یوه ستره فاجعه بلل شوې.

الله سبحانه وتعالی فرمایي، ژباړه: (الحج: ٤٠)

یعني الله سبحانه وتعالی حتماً د هغو کسانو مرسته کوي چې د هغه د دین کومک کوي، ځکه الله قوي او عزتمن دی. دا آیت موږ ته دا درس راکوي چې که موږ د دین د نصرت دعوه کوو، نو د اسلامي نظام ساتنه زموږ د دیني مسؤلیت یوه مهمه برخه ده. که دا نظام کمزوری شي، نو هغه الهي احکام چې د ټولنې د اصلاح، د عدل د قیام او د شریعت د تطبیق لپاره وضع شوي، د تطبیق وړ نه پاتې کېږي.

اسلامي فقه د اسلامي نظام ساتنه یوه وجیبه ګڼي. امام ابن تیمیه (رحمه الله) وایي :ژباړه: دین اساس دی او نظام (حکومت) یې ساتونکی دی، نو هغه څه چې اساس ونه لري، ړنګېږي او هغه څه چې ساتونکی ونه لري، ضایع کېږي.

که اسلامي نظام ونه ساتل شي، نو دا به یوازې د یوې ادارې یا حکومتي جوړښت سقوط نه وي، بلکې د اسلامي ارزښتونو، شرعي قوانینو او امت د عزت کمزوري به وي. د نظام کمزوري د امت کمزوري ده او د نظام استحکام د امت استحکام. که خدای مکړه د اسلامي امارت ستنې ولړزېږي، نو د خلکو دیني، سیاسي او ټولنیز ژوند ته به پراخ زیان ورسېږي او ټولنه به د فوضویت، بې‌ثباتۍ او ګډوډۍ ښکار شي.

د اسلامي نظام ساتنه یوازې په شعارونو نه کېږي، بلکې عملي اقدامات غواړي. دا یوازې د حکومتي چارواکو مسؤلیت هم نه دی، بلکې د هر فرد، ټولنې او ادارې مسؤلیت دی. علماء، مشران، قاضیان، مجاهدین او عام مسلمانان ټول باید د نظام د بقا، استحکام او اصلاح لپاره خپلې ایماني وجیبې ادا کړي.

رسول الله ﷺ د اسلامي دولت د اهمیت په اړه فرمایي، ژباړه: (بخاري: ٢٩٥٧، مسلم: ١٨٤١) امام (حاکم) یو ډال دی، د هغه تر شا جګړه کېږي او د هغه له لارې ساتنه کېږي.

یعني اسلامي نظام د مسلمانانو لپاره د دفاع، ثبات او امنیت ډال دی. که دا ډال کمزوری شي، نو د امت عزت او امنیت به له ګواښ سره مخ شي. نن که د نظام د کمزورتیا عوامل ونه درول شي، نو سبا به امت له داسې بحران سره مخ شي چې کنټرول به یې ناشونی وي.

له همدې امله، اسلامي نظام یوازې د اعلان او حاکمیت له لارې نه قایمېږي، بلکې د خلکو د وفادارۍ، عدالت، اخلاص او تقوا له لارې پیاوړی پاتې کېږي. که خدای مکړه، زموږ د کړنو، بې‌پروایۍ، داخلي اختلافاتو، یا شخصي ګټو له امله نظام بدنامېږي، یا تضعیف کېږي، نو دا به یوازې سیاسي ناکامي نه وي، بلکې یو ستر خیانت به وي چې د امت د کمزورتیا سبب به شي.

نن موږ له داسې یوې مرحلې سره مخ یو، چې په ځینو برخو کې د کمزورۍ نښې ښکاري. د داخلي نظم ساتل، د عدل تأمین، د بیت المال صحیح مدیریت، د خلکو د اړتیاوو درک، د علماوو، قاضیانو او چارواکو اخلاص او د نظام د شرعي اصولو پر بنسټ ولاړ چلند، ټول هغه اساسي عناصر دي چې د اسلامي نظام پیاوړتیا تضمینولی شي. که موږ د دې برخو پیاوړتیا ته پام ونه کړو، نو د نظام کمزوري به د یوه ستر بحران پیل وي.

نو ځکه، د اسلامي نظام ساتنه یوازې یو سیاسي انتخاب نه، بلکې شرعي، دیني، او ایماني مسؤلیت دی. د هر مسلمان وجیبه ده چې د دې نظام د بقا، استحکام او اصلاح لپاره کار وکړي او هر هغه څه چې د نظام کمزوري کولو ته لاره هواروي، له هغه څخه ځان وساتي. که نظام پاتې وي، شریعت به حاکم وي، عدالت به موجود وي، اسلامي ارزښتونه به ژوندي وي او د امت عزت به خوندي وي. خو که نظام کمزوری شي، بیا به نه شریعت وي، نه به عدالت وي او نه به اسلامي نظام. نو د دې الهي نعمت ساتنه، زموږ د ټولو ایماني مکلفیت دی.

## فلسطینیان د اسلام د حیثیت لپاره قرباني ورکوي؛

# اسلامي نړۍ باید د غزې په ابادولو کې برخه واخلي

ځینې اسلام ضد کړۍ په دې باور دي، چې ګواکې د غزې په وروستۍ جګړه کې دغه تړانګه لوټې لوټې شوه، زرګونه اوسېدونکي یې شهیدان او زرګونه نور یې ټپیان شوي او سلګونه زره نور له خپلو مېنو څخه بې ځایه او اوس مهال په سختو شرایطو کې ژوند کوي، نو زیان خو اصلاً فلسطینیانو لیدلی او په باور یې ګټه صهیونیستي رژیم کړې ده. د دغو فکرونو پر وړاندې باید ووایم او ولیکم، چې فلسطینیانو دا دومره لویه قرباني د خپل ځان او ټولې اسلامي نړۍ د حیثیت د ساتلو لپاره ورکړې او هغه په دې مانا، چې د یهودو پر وړاندې د فلسطینیانو پاتې راتلل یواځې د فلسطین ناکامي نه ده؛ بلکې د ټولې اسلامي نړۍ ناکامي بلل کېږي. د فلسطینیانو د قربانیو بله لویه پایله دا هم ده، چې د اسرائیلو له زندانونو څخه سلګونه فلسطینیان، چې ښځې او ماشومان هم په کې شامل دي، ازادېږي او له خپلو کورنیو سره یوځای کېږي.

ښایي څوک ووایي، چې د سلګونو بندیانو د ازادېدو لپاره دومره لویه قرباني ورکول څه مانا؟ باید وویل شي، چې دا هم د ټولې اسلامي نړۍ د حیثیت خبره ده، چې مسلمان وروڼه او خویندې یې د یهودو په زندانونو کې وي او څوک یې د ګټلو او راخوشې کولو نه وي، نو بالاخره باید یو کس وي، چې د اسلام مبارک دین د دښمنانو له زندانونو د خپلو مسلمانانو د راخوشې کولو لپاره قرباني ورکړي او پرته له شکه، چې دغه قرباني فلسطینیانو ورکړه او لا یې هم ورکوي.

اوس خبره د غزې د بېرته ابادولو ده، چې اسلامي نړۍ یې باید نورو ته پرې نږدي او له افغانستان څخه نیولې تر ټولو اسلامي هېوادونو پورې باید د دغې ښکلې، خو جګړې په شدت سره ځپلې سیمې په ابادولو کې برخه واخلي.

# د ټولګټو پروژو پلي کول خلکو ته کاري بوختیاوې رامنځته کوي

شاه محمود درویش

په افغانستان کې شکر الحمدلله د اوس لپاره امنیتي وضعیت ښه شوی خو یوه ستره ستونزه چې ډېر هېوادوال له هغې څخه تل شکایت لري او ګڼ شمېر هېوادوال او په ځانګړې توګه ځوانان ورسره عملاً مخامخ، لاس او ګرېوان دي هغه بیکاري او بې روزګاري ده او په ټوله کې خلک له اسلامي امارت څخه په کوردننه د سالم کار او روزګار غوښتونکي دي، خو دې ټکي ته موباید پام وي چې په هېواد کې د تیرو کابوڅلور نیمو لسیزو پرله پسې جګړې د اغیزو له پلوه، له شک پرته چې جګړه ځپلی افغانستان نوې جوړونې او بیارغاونې ته ډېره اړتیا لري او له دې څخه هم سترګې نه شي پټېدای چې د اسلامي امارت د اړوندو ارګانونو دهڅو له مخې دهېواد په مختلفو ساحو، سیمو اوښارونو کې ګڼ شمیر اغیزمنې پراختیایي او رغنیزې پروژې د ځایي اوسېدونکو د ستونزو د حل او په ټوله کې خلکو ته د کاري زمینې د رامنځته کېدو په موخه پلي شوي او لاهم دا بهیر پرمخ روان دی، چې په دې لړکې دهېواد په مختلفو ولایتونو کې د پام وړشمیر اغیزمنې پراختیایي او رغنیزې پروژې بشپړې او ګټې اخیستنې ته وړاندې شوی دي چې دا واقعاً غوره اقدام دی.

هېره دې نه وي چې په دې وروستیو کې د لغمان د اوبو او انرژۍ ریاست مسئولینو ویلي، چې د دې ولایت په دولت شاه ولسوالۍ کې د څه باندې ۹ میلیونه افغانیو په لګښت د یوه سربند د جوړولو چارې پیل شوې دي. د یاد ولایت د اوبو او انرژۍ د رئیس په وینا؛ د دې ولایت په دولت شاه ولسوالۍ کې د خوړو نړیوال سازمان په مالي ملاتړ او د آي. بي. ایم. موسسې په همکارۍ د ۹ میلیونه ۳۶ زره ۳۷۸ افغانیو په لګښت د یوه سربند د جوړولو چارې پیل شوې دي. نوموړې زیاته کړې، چې یاده پروژه ۲۰ متره اوږدوالي او ۱۱ متره پراخوالي لري، چې پر مټ به یې ۹۰ هکتاره ځمکه خړوبه او چارې به یې د درېوو میاشتو په موده کې بشپړې شي. ورته مهال د یادې ولسوالۍ اوسېدونکو د یادې پروژې په پلي کېدو خوښي ښودلې او ویلي یې دي، چې د دغې پروژې په پلي کېدو سره به ورته د کار زمینه برابره او د کرنې په برخه کې به یې د اوبو شته ستونزې حل شي.

همدا راز د څه باندې ۴۹ میلیونو افغانیو په لګښت، په لغمان کې د اوبو د ذخیرو او پایپ سیکم ۱۹ پروژو رغنیزې چارې هم پیل شوې دي. د اوبو او انرژۍ وزارت د معلوماتو پربنسټ؛ د لغمان د قرغیو ولسوالۍ د وکیل خان بن وړې ګلي او ګل غونډۍ سیمو کې د اوبو ذخیرو او پایپ سکیم د ۱۹ پروژو رغنیزې چارې د ۴۹ میلیونه ۲۸۸ زره ۱۳۹ افغانیو په لګښت پیل شوې دي. البته په دغو پروژو کې ګڼ شمېر کسانو ته د کار زمینه برابره شوې ده او چارې به یې د درېوو میاشتو په موده کې بشپړې او ګټې اخیستنې ته به وسپارل شي. ویل شوي چې د یادو پروژو چارې د «ډبلیو اف پي» سازمان په مالي لګښت او د لغمان د اوبو او انرژۍ ریاست تر څارنې لاندې پرمخ وړل کېږي.»

البته دې ټکي ته موهم باید پام وي چې په ټولیزه توګه دهېواد په بیلابیلو ساحو کې د هرډول ټولګټو او رغنیزو پروژو په پلي کولو کې زموږ د جګړه ځپلي هېواد آبادي او ښیرازي نغښتې ده، دا یو رښتیني واقعیت هم دی چې زموږ هېواد د پردیو له خوا د تیرو څلور نیمو لسیزو جګړې له امله وران او ویجاړ شوی او افغان مظلوم ولس ته هم په ټولیزه توګه په دې بهیر کې نه جبیره کېدونکي مالي او ځاني تاوانونه اوښتي دي، چې نن سبا یې د آبادولو، رغاولو، سمسورتیا او ښیرازۍ په موخه د پتمنو هېوادوالو دهلوځلو ترڅنګ د افغانستان اسلامي امارت د اړوندو ارګانونو کوښښ او جدي اقداماتو ته هم ډېره اړتیا لیدل کېږي او اړینه ده چې د اسلامي امارت اړوند ارګانونه دهېوادوالو لومړیتوبونو ته په پاملرنې سره دمنظمو پروګرامونو په طرحه کولو په اندولیزه توګه د هېواد په مرکز، ولایتونو، ولسوالیو، کلیو او بانډو کې ستړې او کوچنۍ اغیزمنې او رغنیزې پروژې طرحه، تطبیق او ګټې اخیستنې ته یې وړاندې کړي.

د یادولو وړ ده چې د ټولګټو پروژو په برخه کې د اسلامي امارت داړوندو ارګانونو د هراړخیزو پروګرامونو د تطبیق اوګټې اخیستنې بهیر او د هېواد په ګوټ ګوټ کې د پرمختیایي پروژو د طرحې او تطبیق لړۍ هم د قدر وړ ده، ځکه چې تراوسه یې دخلکو له لومړیتوبونو سره سم د هېواد په مختلفو ولایتونو کې ډول ډول پروژې طرحه او تطبیق کړې دي. په دې هیله چې د افغانستان اسلامي امارت په ټولیزه توګه د هېواد د آبادي ، سمسورتیا او ښیرازي په موخه دشته امکاناتو ترڅنګ دمرستندویه هېوادونو او خیریه بنسټونو هراړخیزې... ۳مخ

## ټاپي؛ هغه خوب چې په حقیقت بدل شو

رحمت‌الله فیضان

ټاپي د (ترکمنستان–افغانستان–پاکستان او هند) د ګازو نل‌لیکې پروژه په ۱۹۹۰م لسیزه کې، د اسلامي امارت د لومړۍ واکمنۍ پر مهال مطرح شوه، خو د بېلابېلو ننګونو او په هېواد کې د سیاسي ثبات د نشتون له امله، د اسلامي امارت تر بیا واک ته رسېدو پورې وځنډېده.

له کلونو انتظار وروسته، په ۲۰۲۴ کال کې د دې پروژې عملي کار د افغانستان په خاوره کې پیل شو. په وروستیو اوونیو کې، د ټاپي نل‌لیکې غځولو بهیر په هرات کې په چټکۍ سره روان دي او تر اوسه له شپږ کیلومتره زیاته نل‌لیکه د افغانستان په خاوره کې غځول شوې ده. د دې پروژې پرمختګ د هرات خلکو ته د خوښۍ زېري ورکړي دي.

اسلامي امارت د ټاپي پروژې د امنیت ساتلو او د اسانتیاوو برابرولو ته بشپړ ژمن دي او هېڅ فرد یا ډلې ته به اجازه ورنه کړي چې د دې پروژې امنیت ته زیان ورسوي.

دا پروژه د افغانستان اقتصادي تیر بلل کېږي او د کارموندنې او اقتصادي ودې لپاره به مهم رول ولوبوي. همدا راز، ټاپي د افغانستان لپاره یوه لویه د انرژي سرچینه ده، چې په ځانګړې ډول د هرات، فراه او کندهار ولایتونه به ترې استفاده وکړي. دا ګاز به د ودانیزو چارو او صنعتي فابریکو لپاره وکارول شي. سربېره پر دې، دا پروژه به لسګونه مستقیم او غیرمستقیم کاري فرصتونه رامنځته کړي.

افغانستان به هر کال د دې پروژې د ګازو د ټرانزیټ له حقه ۵۰۰ میلیونه ډالره عاید ترلاسه کړي، چې دا عواید به د بنسټیزو پروژو، پراختیایي کارونو او د خلکو د ژوند د ښه والي لپاره وکارول شي.

د دې نل‌لیکې یوه برخه د افغانستان داخلي مصرف ته ځانګړې شوې ده، چې د هرات، فراه او کندهار په ګډون د لوېدیځو ولایتونو د سون توکو د کمښت ستونزه به راکمه کړي. د ټاپي په عملي کېدو سره به ، افغانستان د سیمې د انرژۍ د نښلولو پل وپېژندل شي او سیمه‌ییزه اقتصادي همکاري او تعاملات به لا پیاوړي شي.

# افغان اعلانات



## د ترون د اعطاء د پرېکړې خبرتیا

د تدارکاتو قانون د دري څلوېښتمې مادې د (٢) فقرې له مخې ټولو هېوادوالو ته خبر ورکول کېږي چې د ا.ا.ا ستره محکمه په نظر کې لري د ١٤٠٣هـ ش مالي کال لپاره د عبدالرحیم بابا لمیتد شرکت سره چې د جواز شمېره(٦٦٣٨-٠١٠١) ده او مرکزي دفتر یې د کابل ولایت مرکز پل خشتي ته څېرمه پّه افضل مارکیټ کښې موقعیت لري،د (٢٦٠٤٠٠٠)دوه میلیونه او شپږ سوه څلور زره افغانیو په قیمت سره د سترې محکمې د محاکمو امنیتي او اجرائیوي عمومي ریاست لپاره د یو عراده فاضلآبو د ایستلو ټانکر موټر د تدارک قرارداد وکړي. هر ډول حکمي او حقیقي شخصیتونه چې پدې اړه نیوکه لري د تدارکاتو قانون د پنځوسمې مادې له مخې کولای شي په لیکلي ډول د دلایلو په لرلو سره خپلې نیوکې د دې اعلان د خپرېدو له نېټې څخه تر اوو(٧) تقویمي ورځو پورې د عامې روغتیا څلور لارې ته څېرمه د سترې محکمې د مالي او اداري عمومي ریاست اړوند د تدارکاتو آمریت ته وړاندې کړي.دا خبرتیا د قرارداد د تړلو په معنی نه ده د پورته ذکر شوې نېټې تر پوره کېدو او نورو قانوني مرحلو تر سرته رسولو پورې د قرارداد عقد نه ترل کېږي. ٩٠٥٣

## اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم محمد عادل صاحب زاده فرزند روحانی صاحب زاده ولدیت احمد صاحب زاده دارنده تذکره نمبر (٥٠٥٨٨-١٠٠٢-١٣٩٩) مسکونه اصلی ولایت لوگر مالک امتیاز دواخانه المومن واقع ناحیه پنجم ولایت کابل طی درخواستی به مقام محترم معینیت غذا و ادویه عامه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم سید جمال الدین صاحب زاده فرزند سعد الله صاحب زاده ولدیت سردار صاحب زاده دارنده تذکره شماره (٤٣٩٧٢-١١٠١-١٣٩٩) مسکونه اصلی ولایت کابل گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ١٠ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ٩٠٤١

## اطلاعیه محکمه

اوراق دعوی حقوقی اسامی حاجی عنایت الله فرزند حاجی عبدالواحد علیه اسامی اسد حسن خیل فرزند یار محمد در رابطه به موضوع پول تحت غور و بررسی محکمه ابتدائیه زون چهارم شهر کابل قرار دارد.

از اینکه مدعی علیه مذکور با وجود جلب های متعدد غرض پیشبرد دعوی حقوقی اش حاضر محکمه نگردید. بناء به اطلاع اسامی اسد حسن خیل نام مدعی علیه مذکور و یا اگر کسی از وی اطلاع دارد در ظرف ١٥ یوم به این محکمه غرض پیشبرد دعوی خویش حاضر گردد در غیر این صورت در مورد فیصله خواهد گرفت. ٩٠٤٤

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه وکالت خط شرعی دارای نمبر ٥٩٣/٥٠٤٦ مورخ ١٤٠٠/١١/١٤ مرتبه محکمه وثایق حوزه چهارم به اسم نفیسه بنت محمد یوسف ولدیت محمد یونس مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد. ٩٠٥٢

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسی تذکر تابعیت به اسم فرشته ناصری بنت علی دوست مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد. ٩٠٤٥

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه مکتوب گمرکی دارای نمبر ٤٣٣٦٠٤١ به اسم فرزاد فردوس لمتید مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد. ٩٠٤٣

## اطلاعیه دعوت به داوطلبی

ریاست ارشاد ، حج و اوقاف ولایت لوگر بخاطر تامین برق مارکیت مدینه یک پایه کمپکت ترانسفارمر نصب مینمایند.

اشخاص ، شرکت های و موسسات دولتی میتوانند از تاریخ نشر اعلان الی مدت هفت روز جهت اخذ به مدیریت محاسبه ریاست ارشاد ، حج و اوقاف ولایت لوگر مراجعه نمایند. ٩٠٣٢

## اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (٢) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا تهیه و خریداری موکیت ترکی اصلی، پرده همراه نصب و انتقال به هلمند برشنا، شماره داوطلبی: د افغانستان برشنا شرکت/ ١٤٤٥/ داوطلبی باز ملی/ اجناس-٠٩١ با شرکت تجارتی رفیع خالد دارنده جواز نمبر ٢٨٤٦٠ با داشتن محل اصلی شرکت{ سرک ٣٠ متره چنده اول ناحیه اول شهر کابل مرکز کابل} به قیمت مجموعی مبلغ (٦٢١,٩٠٠) شش صد و بیست و یک هزار و نوصد افغانی اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست تدارکات د افغانستان برشنا شرکت - دهمزنگ - کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

## اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (٢) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا تهیه و خریداری پرزه جات، روغنیات، تایر وسایط مرکز (سه لات)، شماره داوطلبی: (٠٨٩/اجناس/داوطلبی باز ملی/١٤٠٣/برشنا شرکت) لات دوم و سوم با شرکت خدمات لوژستیکی و تجارتی بلال عسی زاده دارنده جواز نمبر ٧٤٥٢٢ با داشتن محل اصلی شرکت{ محمودی تاور قوای مرکز ناحیه ٢ مرکز کابل} لات دوم به قیمت مجموعی مبلغ (١,٠٣٧,٦٠٠) یک میلیون و سی و هفت هزار و شش صد افغانی، لات سوم به قیمت مجموعی مبلغ (٩,٦١٠,٦٥٠) نو میلیون و شش صد و ده هزار و شش صد و پنجاه افغانی و لات اول با شرکت مسعود نور لمیتد دارنده جواز نمبر ١٣٥٦٣ با داشتن محل اصلی شرکت{ چهاراهی حوزه٤ مرکز کابل} به قیمت مجموعی مبلغ (١,٠١٣,٠٠٠) یک میلیون و سیزده هزار افغانی اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست تدارکات د افغانستان برشنا شرکت - دهمزنگ - کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند. این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

## اطلاعیه کندز

پارک استقلال ملکیت ریاست شاروالی کندز واقع ناحیه پنجم شهر کندز برای مدت یک سال به اجاره داده می شود. اشخاص و افراد واجد شرایط که خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی آن را داشته باشند با درخواست های شان اعتبار از تاریخ نشر اعلان الی مدت ٢١ روز کاری به ریاست شاروالی کندز مراجعه نمائید.

شرطنامه را ملاحظه نموده تامینات نقدا اخذ میگردد. ٩٠

## اطلاعیه کندز

دو قطعه زمین زراعتی موازی٨ جریب ١٥ بسوه و ٢ بسواسه ملکیت ریاست شاروالی کندز واقع سه درک ناحیه دوم شهر کندز برای مدت یک سال به اجاره داده میشود. اشخاص و افراد واجد شرایط که خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی آن را داشته باشند با در خواست های شان اعتبار از تاریخ نشر اعلان الی مدت ٢١ روز کاری به ریاست شاروالی کندز مراجعه نمایند.

شرطنامه را ملاحظه نموده تامینات نقدا اخذ میگردد. ٩١

## اعلان تدارکات

**موضوع: اعلان تدارکاتی پروژه حفظ و مراقبتی استیشن های هایدرولوژی در مناطق و ولایات مختلف:**

وزارت آب و انرژی از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی پروژه های ذیل:

| شماره | نام پروژه | تاریخ و ساعت آفر گشایی | تضمین آفر |
|---|---|---|---|
| ١ | پروژه حفظ و مراقبتی ترمیم و بازسازی استیشن هایدرولوژی کیبلوی شوخی ولایت کاپیسا. | روز چهار شنبه ساعت ١٠قبل از ظهر 8/12/1403 | تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ ٤٥٠٠٠ افغانی |
| ٢ | پروژه های حفظ و مراقبتی تعداد ٥ استیشن هاید رولوژی برف سنج های ( بند امیر، کوتل شاطو، پنجاب، سرکوتل شیبر و ورس) ولایت بامیان | روز چهار شنبه ساعت ١٠ قبل از ظهر 8/12/1403 | تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ 34000 افغانی |
| ٣ | لات اول:پروژه های حفظ و مراقبتی دیوار محافظتی ٣ استیشن هایدر میترولوژی (خاواک، نزدیک خاواک ولسوالی پریان وکرامان ولسوالی دره) ولایت پنجشیر.<br>لات دوم: پروژه های حفظ و مراقبتی ٨ استیشن هایدر میترولوژی (خاواک، برف سنج کورپیتاب، کوتل خاواک، نزدیک خاواک ولسوالی پریان)، عمرض **ولسوالی حنج،(کرامان، دوآبی ولسوالی دره ) و دره هزاره ولسوالی آبشاره )ولایت پنجشیر.** | روزه دو شنبه ساعت١٠ قبل از ظهر ١٤٠٣/١٢/٠٦ | برای لات اول تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ ٢٠٠٠٠٠ افغانی<br>برای لات دوم تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ ٢٠٠٠٠ افغانی |
| ٤ | پروژه احیا و بازسازی دیوار استنادی و حفظ و مراقبتی استیشن هایدرولوژی باغ لالا ولسوالی سالنگ ولایت پروان | روز سه شنبه ساعت 10 قبل از ظهر١٤٠٣/١٢/٠٧ | تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ 40000 افغانی |
| ٥ | پروژه حفظ و مراقبتی استیشن هایدرولوژی آسیا آباد ولایت سرپل | روز سه شنبه ساعت 10 قبل از ظهر ١٤٠٣/١٢/٠٧ | تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ 85000 افغانی |
| ٦ | لات اول: پروژه حفظ و مراقبتی دیوار استنادی استیشن هایدرولوژی دوده ولسوالی لجه منگل ولایت پکتیا.<br>لات دوم: پروژه حفظ و مراقبتی دیوار استنادی استیشن هایدرولوژی پل بنگش ولسوالی چمکنی ولایت پکتیا. | روزه دو شنبه ساعت١٠ قبل از ظهر ١٤٠٣/١٢/٠٦ | برای لات اول تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ ٦٥٠٠٠ افغانی<br>برای لات دوم تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ ٩٥٠٠٠ افغانی |
| ٧ | پروژه حفظ و مراقبتی ترمیم استیشن های هایدرولوژی کشنده، رباط بالا و پل برق ولایت بلخ. | روز سه شنبه ساعت ٢ بجه بعد از ظهر ١٤٠٣/١٢/٠٧ | تضمین بانکی یا پول نقد مبلغ ٢٠٠٠٠ افغانی |

اشتراک نموده و سافت شرطنامه مربوطه را در حافظه یا فلش دسک از ریاست تدارکات وزارت آب و انرژی واقع سرک عمومی دارالامان سناتوریم به دست آورده، آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی مطابق تاریخ،روز و ساعت مندرج جدول فوق به آمریت تدارکات امور ساختمانی تعمیر شماره ٥ منزل اول تسلیم نمایند. آفرهای ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.

جلسه آفر گشایی مطابق جدول فوق در اطاق آفرگشایی ریاست تدارکات تدویر می گردد.

---

## د ټولګټو پروژو...

مرستې لاهم را جلب او د یوه منظم میکانیزم پربنسټ یې د اړوندو ارګانونو په همکارۍ په نورو اغیزمنو، رغنیزو، ټولګټو ، پراختیايي او بنسټیزو پروژو ولګوي چې له امله یې په ټولیزه توګه زموږ جګړه ځپلی هېواد آباد، ودان، سمسور او ښیرازه شي او هم سل په سلو کې د دې امکان شته چې دهېواد په ګوټ ګوټ یعنې کلیو، بانډو او ښارونو کې دمختلفو ټولګټو، بنسټیزو او رغنیزو پروژو دعملي دپرمخ بیولو په ترڅ کی به هم ګڼ شمیر هېوادوالو ته چې همدا اوس د هېواد په مختلفو ساحوکې له بېکاري او بی روزګاري څخه سرټکوي او په ورځني ژوند کې له بې شمیره ستونزو سره لاس اوګریوان دي په هېواد کې دننه دوی ته دسالم کار او روزګار زمینه هم برابره شي اوپه دې ډول به له یوې خوا زموږ هېواد آباد او ودان شي اوله بله پلوه به ګڼ شمیر بیکاره او بې روزګاره هېوادوال چې دکارموندنې لپاره بهرنیو ملکونو ته دتللو تکل لري دوی به هم دبیکارۍ او بې روزګارۍ له ستونزمن اوربړوونکي حالت څخه وژغورل شي او په هېواد کې دننه به له سالمو بوختیاوو څخه برخمن او دګران هېواد سرلوړي افغانستان په آبادي او ښیرازي کې به هم په ښه ډول سهیم شي او په دې توګه زموږ ګران هېواد به هم ورځ تربلې د ترقي او پرمختګ پرلور لا پرمخ ولاړشي .

## خلیفه سراج الدین...

سره نغدي مرسته هم کړې ده. د اساهي کورنۍ ته ورغلي پلاوي د وورزش د دې اتل مړینه د افغانستان د ورزشي ټولنې لپاره ستره ضایعه بللې ده. د یادونې وړ ده، چې علي رضا اساهي د نړۍ د بدن د ښکلا دوه مرتبې اتل د روانې سلواغې میاشتې په څلورمه نېټه د زړه د حملې له کبله کابل کې مړ شو.

## چابهار بندر افغان...

د افغان خصوصي سکتور په ګډون له ټولو خصوصي سکټورونو غوښتې ،چې د چهار بندر د ظرفیت لوړونې او فعالیتونو د چټکوالي لپاره خپلې پانګونې هلته انتقال کړي.په ورته مهال، د افغانستان د صنعت او سوداګرۍ وزارت مسئولین دغه بندر له هند سره د ټرانزیټ او د نورو اقتصادي لارو ښه بدیل ګڼي.دوی زیاتوي: په یاد بندر کې د افغان سوداګرو لپاره د آسانتیاوو رامنځته کولو او د ستونزو د حل په موخه د اقتصادي مرستیالۍ او صنعت او سوداګرۍ وزارت چارواکو د ایران له حکومت سره خبرې کړې دي.د صنعت او سوداګرۍ وزارت ویاند اخندزاده عبدالسلام جواد وایي: (( د اسلامي امارت د اقتصادي موخو لپاره د چابهار بندر اهمیت ته په کتو، د اقتصادي مرستیالۍ پر مشرۍ او د صنعت او تجارت وزارت د مشرتابه په ګډون د افغانستان اسلامي امارت لوړ رتبه پلاوي له چابهار بندره لیدنه وکړه او د تجارتي، اقتصادي اړیکو د پراختیا او د ټرانزیټي لارو د ښو کولو په موخه، له ګڼو ایراني چارواکو سره په څو ناستو کې، په دې اړه خبرې وکړې.))چابهار بندر ،چې د ټرانزیټ لپاره خورا مهمه لاره ګڼل کېږي، یاد بندر د ګډو هېوادونو د تودو اړیکو پر رغولو سربېره د افغانستان لپاره نوري کومې ګټې لري؟د اقتصادي چارو شنونکي عبدالنصیر رشتیا وایي: (( افغانستان له وچې سره تړلی هېواد دی او آزادو اوبو ته لاسرسي نه لري. له بلې خوا، افغانستان له اوږدې مودې راهیسې په یوه مسیر او بندر باندې متکي و او کله چې سیاسي ستونزې جوړېدې، پاکستانیانو خپل بندرونه د فشار د اړمونو په توګه کارول. اوس چې د چابهار بندر بحث دی، بې له شکه دغه بندر د کراچۍ بندر په نسبت ٨٠٠ کیلومتره نږدې او د عباس بندر په پرتله٩٠٠ کیلومتره نږدې دی. کله چې له دې بندره ګټه اخیستنه پیل شي، افغانستان به له نویو بازارونو سره ونښلوي او موږ کولی شو له دې لارې ډېر په اسانه د نړۍ له نورو هېوادونو سره وصل شو.))د ایران چابهار بندر هند ته د افغانستان د صادراتو لپاره یوه ښه لاره بلل کېږي. د سوداګرۍ او صنعت وزارت د معلوماتو له مخې، هر کال له دې لارې د نږدې ٣ میلیاردو ډالرو په ارزښت سوداګري ترسره کېږي.

## له هرات ښار څخه ...

ولسوالۍ سوېللو بدیځ او د اوبه ولسوالۍ، ښوونکو ښارګوټي ته څېرمه، سعادت ښارګوټي، د هوایي ډګر ختیځ او د ولسوالۍ د شمالي سرک شاوخوا سیمو ته ولېږدول شي.د نوموړي په وینا، دغه پرېکړه یې د هراتښار او ورڅېرمه سیمو کې د هوا د ککړتیا د مخنیوي او د هوا د پاکولو په موخه کړې.د هرات د چاپېریال ساتنې ریاست د معلوماتو له مخې، دا مهال دغه ولایت کې د خښتو ١١٥ بټۍ فعالي دي.

## فراه کې د لویو...

موټر چلوونکی ګړندي تګ ونه کړي او مسافرین بې له پېښې مقصد ته ورسوي.بله خوا د سباوون او سید عبدالهادي په نومونو دوو تنو فراهي وګړو د دې اقداماتو هرکلی کړی او ویلي یې دي، چې پخوا د ګړندي تګ له کبله ګڼې ترافیکي پېښې رامنځته کېدلې، خو اوس به دا ستونزه هواره شي.د یادونې وړ ده، چې د مسئولینو له لوري د موټرو د ګړندي تګ د کنټرول په دې نوې هڅې سره د خلکو اندېښنې کمې شوې او ډېر وګړي پرې خوښ دي.

## د هوا د ککړتیا د مخنیوي...

په میراث پاتې دي چې اسلامي امارت له بیا ځلي واکمنۍ وروسته په ښه ډول مدیریت کړي دي.د عابد په وینا: د کابل ښار د هوا ککړتیا مختلف عوامل لري چې له هغې جملې بشري عوامل دي چې د ژمي په موسم کې د ډبرو سکرو، لرګیو، پلاستیک، ټیرونو او ربړونو سوځول هغه څه دي چې په مستقیم ډول د هوا د ککړتیا سبب ګرځېدلي دي. دا مهال د کابل په مرکز او ولسوالیو کې شاوخوا ٦٣٨ تولیدي او صنعتي فابریکې، ٦٧٣ امارتي او شخصي روغتونونه، ٢٦٠ مارکیټونه او منډویاني، ٥٠٣ د ګچو او خښتو جوړولو بټۍ، ٥٩٨ د موټرو جوړولو ورکشاپونه، ٨٧ د جغل د تولید ماشینونه او ریګریشنونه، ١٧ ښارګوټي، ٧٠٥ بلند منزلونه، ٦٨٩١٩٣ تیز رفتاره او باربري موټرونه او همدارنګه په سلګونه نور فعالیتونه شتون لري چې په شکل د اشکالو یې پر چاپېریال او د هوا پر ککړتیا اغېزه کړي. بل یې طبیعي لاملونه دي چې د کابل ښار د کاسې په شکل جغرافیایي جوړښت لري چې دا د هوا د ککړتیا د زیاتوالي یو مهم لامل دی. له دې څخه علاوه اقلیمي بدلون، د واورو او بارانونو کمي هم ددې لامل شوي چې په هېواد کې هوا ککړه او زیان رسوونکې شي.د نوموړي په خبره: د چاپېریال ساتنې ملي اداره د هوا د ککړتیا د مخنیوي او کمولو لپاره هر کال د ژمي له پیل څخه مخکې، خپل شپږ میاشتنی عملیاتي پلان ترتیبوي چې په اساس یې غواړي په لنډه موده کې ځینې محدودیتونه په مختلفو برخوکې د ښاروالۍ او سکتوري ادارو په همکارۍ وضع کړي تر څو د هوا د ککړتیا په کمولو او مخنیوي کې اغیزمن تمام شي. د سون توکو کاروونکو کورونو ته د هوا د فلتر لګولو سپارښتنه او د دودزا موټرو د مخنیوي اړوند هم اقدامات شوي دي. د چاپېریال ساتنې په پار خلکو ته عامه پوهاوي او څارنه تر سره شوې چې له مخې یې د چاپېریال ساتنې ملي اداري تخنیکي ارقام ښیې چې په لومړیو لسو میاشتو کې د تېر کال په پرتله د هوا د ککړتیا وضعیت ښه دي او په دې برخه کې زموږ کوښښونه دوام لري.همدارنګه د چاپېریال ساتني ملي اداري پر مهمو طرحو او پلانونو هم کار کړي چې د چاپېریالي ککړتیا او په ځانګړې توګه د هوا او اوبو د ککړتیاوو د کموالي او مخنیوي په برخه کې اغیزمن تمامیدلای شي. لکه تصفیه خانې جوړول، د ډبرو سکرو څخه د بریښنا د تولید طرحې په جوړولو کې د اوبو او برښنا وزارت سره همکاري کول، د نیالګیو کښېنولو ٨ کلنه طرحه جوړول او د مشرتابه مقام ته د منظورۍ په موخه لېږل، د دود د تصفیې فلټر طرحه ترتیب او نهایي کول، د چاپېریالي ککړتیاوو د کموالي او مخنیوي د مقررې تهیه کول، د پاکې انرژۍ د تولید په منظور د خصوصي سکتور هڅونه، د هېواد د لویو ښارونو لپاره د هوا ککړتیا د مخنیوي او عمل پنځه کلن پلان نوي کول او نهایي کېدل او د فاضلاب موټرو ثبت شامل دي.

**زیارمل هوتک**

## سوریه کې...

پرون ماښام، د تېرې جمعې په ورځ ترسره شوی، خو ادعا کوي چې سرتېرو ته یې کوم زیان نه دي رسېدلي او هم یې برید په شا تمبولي.یاد پوځ وایي ،چې په سیمه کې د اسرائیلو د پوځ او د اسرائیلو د اتباعو پر وړاندې د ګواښونو د لرې کولو لپاره به کار وکړي. همدارنګه، د اسرائیلو د پوځ راډیو دا پېښه غیر معمولي وبلله او یادونه یې وکړه چې دا لومړي ځل و چې اسرائیلي ځواکونه د ګولان لوړو او د سوریې په سویلي سیمو کې د دوی د یرغل له پیل راهیسې د ډزو هدف ګرځېدلي دي. سوریې کې د بشار الاسد رژیم له ړنګېدو وروسته اسرائیلي پوځ له وضعیت څخه په استفادې ځینې سوریايي سیمې لاندې کړې چې په سوریه کې نوې حکومت ترې غوښتنه کړې چې دا سیمې بېرته پرېږدي او ویلي یې دي چې په سوریې کې د اسرائیلو شتون او بریدونه ورته د منلو نه دي.

## لوګر کې د فوټسال....

اتحاد لوګر خپلې سیالي لوبډلي ته د ٣/٥ ګولونو په توپیرماتې ورکړه. نعیم زي زیاته کړې، چې یادې سیالۍ د پل علم ښار اړوند په لودین لوبغالي کې ترسره کېږي او موخه یې د غوره لوبغاړو ټاکل او ځوانان ورزش ته هڅول دي.

## دافغانستان...

اړه د امریکا هر ډول اقدام د منلو وړ نه دي.یاد وزارت همدارنګه په تېرو دریو کلونو کې د امریکا له خوا د ٣،٧١ میلیاردو ډالرو لګښت ته په اشاري سره ویلي ،چې دې پیسو د افغانستان پر اقتصادي وضعیت هېڅ اغیزې نه دي کړې.سرچینه زیاتوي، دا پیسې نړیوالو موسسو ته ورکړل شوي ،چې لویه برخه یې د دوی د خپلو لګښتونو او پاتې یې د بشري مرستو په نوم کارول شوې دي.

## تېره میاشت...

هڅې کوي د لا زیاتو انتقالاتو لپاره مناسب شرایط چمتو او سوداګرو ته اړینې آسانتیاوې برابرې کړي. د یادونې وړ ده چې د روان ١٤٠٣ مالي کال د لیندۍ په میاشت کې، د افغانستان دوسپنې پټلۍ له لارې ٤٥٢ زره ١٣٣ ټنه انتقالات ترسره شوي چې له دې جملې ٧٧٧ ټنه یې صادرات او ټرانزیټ وو.

## ٣٠٠ تن در...

داده که در اثر آن ٣٠٠ تن کشته و زخمی شده اند. زبیر، میافزاید که، در مقایسه با گذشته، رویدادهای ترافیکی در این ولایت دو برابر شده است. او فعالیت موترهای راستفرمان، خرابی سرکها و بیاحتیاطی رانندگان را از مهمترین عوامل افزایش رویدادهای ترافیکی در این ولایت عنوان میکند. )) در جریان یک سال ٤١ تن در رویدادهای ترافیکی در این ولایت کشته و ٢٥٩ تن زخمی شده اند؛ استفاده از موترهای دست پاکستان، خرابی سرکها و بیتوجهی رانندگان به قوانین ترافیکی، از علتهای اصلی رویدادهای ترافیکی اند.))رویدادهای ترافیکی در بیشتر شاهراههای افغانستان، یکی از نگرانیهای شهروندان است که سالانه هزاران کشته و زخمی بر جا میگذارد.

## بلخ کې ٧ کلنه...

سولې پر تېر سره کېناستې.په ورته مهال د همدې ولایت په دولت آباد ولسوالۍ کې هم دوې مروري کورنۍ له خپلمنځي تاوتریخوالي او ژوږو جنجالونو وروسته د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو ریاست د مسؤلینو او مصلحینو په هلوځلو پخلا شوې، چې لومړې د دواړو کورنیو له مشرانو سره جلاجلا ناستې وشوې، اختیارلیکونه ترې واخیستل شول او د یوې عادلانه پرېکړې له مخې یې سوله ییز ژوند پیل کړ.د یادو ښکېلو کورنیو مشرانو د اسلامي امارت له مسؤلینو په مننې کولو سره ژمنه وکړه، چې له دې وروسته به له یو بل سره هیڅ جنجالونه نه کوي بلکې د ورورۍ ژوند به سره کوي.

## پکتیا کې پر...

راتلونکې کې به نورو اړمنو کورنیو ته هم ورته کېټونه ووېشل شي، څو د خیاطۍ له لارې د خپلې کورنۍ ارتیاوې پوره کړي.هغه کورنۍ چې د یاد ریاست او همکارۍ موسسې کېټونه یې، ترلاسه کړي، خوښي څرګندوي او وایي، د یادو وسایلو پرمټ به د ژوند ځینې اړتیاوې پوره کړي.د خیاطۍ هر کېټ کې د شاوخوا ٩زره افغانیو په اندازه د خیاطۍ ببلابېل وسایل شامل دي.پکتیا کې له دې وړاندې هم پر بېوزلو کورنیو ورته مرستې وېشل شوې چې تر ډېره یې، د یادو کورنیو اقتصادي وضعیت ښه کړی دی.

## د «الصَّحَابَةُ في أفغانستان»...

او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو معین مهاجر فراهي، په اوسني عصر کې د لیکوالۍ پر اړتیا او ارزښت خبرې وکړې او ډاډ یې ورکړ چې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د ټولو لیکوالو او ادیبانو لپاره ګډ آدرس دی او دهغوی بشپړ ملاتړ کوي.ده دهېواد له ټولو لیکوالو او ادیبانو څخه وغوښتل ،چې له اطلاعاتو او فرهنګ وزارت سره خپلې همکارۍ جاري وساتي او ورسره دې مشورې شریکې کړي. ورته مهال، د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر اوفرهنګ معین مولوي عتیق الله عزیزي د موضوع په اړوند خبرې وکړې او ویې ویل: موږ باید د خپلو لیکنو له لارې، د خپلو مشاهیرو او اتلانو داستانونه، خدمات او یادبود راتلونکو او راتلونکو نسلونو ته یې ورسوو.مولوي عزیزي، د «الصَّحَابَةُ في أفغانستان» کتاب د مؤلف کړنې وستایلې او زیاته یې کړه، چې د دغه کتاب په چاپ او نشر سره، د صحابه کرامو (رضي الله عنهم) درناوی شوی دی.دغه راز د کور او ښار جوړولو وزارت سرپرست شیخ حمدالله نعماني، د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت او د «الصَّحَابَةُ في أفغانستان» کتاب د مؤلف هڅې وستایلې او په بېلابېلو ژبو یې د دغه کتاب پر ژباړلو ټینګار وکړ.د غونډې په بهیر کې یو شمېر لیکوالو او کره کتونکو، د یاد کتاب د تألیف په خاطر، د مؤلف د هڅو ستاینه وکړه او په اړه یې خپلې نظریې او مشورې شریکې کړې، څو دغه کتاب په راتلونکي چاپ کې اصلاح شي.د غونډې په وروستۍ برخه کې، د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت دمسئولینو له لوري د یاد کتاب مؤلف ته د هغه د هڅو د قدردانۍ په خاطر، ستاینلیک ورکړ شو. د «الصَّحَابَةُ في أفغانستان» کتاب دمفتي محمد شریف راشد تألیف دی ،چې په ١٤٤٥ هجري قمري کال د آزادۍ دولتي مطبعې له لوري د ٥٠٠ ټوکو په تیراژ، دوو بابونو او ٢٨٠ مخونو کې چاپ شوی دی. په دغه تاریخي او معلوماتي اثر کې د یو شمېر انبیاء کرامو ترڅنګ، د هغو ٢٤ جلیل القدرو صحابه کرامو (رضي الله عنهم) ژوندلیکونه راټول شوي چې د افغانستان پر خاوره یې قدمونه ایښي او د مبلغینو او فاتحینو په توګه دغه هېواد ته راغلي دي.

# Hewad Daily

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: ۲۵۲۶۳٤۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

دوشنبه دشعبان المعظم٤مه ١٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د سلواغې۱۵ مه د 2025 م کال د فبروری3یمه


## د ریاست الوزراء د اداري مرستیال په مشرۍ د تشکیلاتو او معاشونو د تنظیم کمېسیون غونډه وکړه



د تشکیلاتو او معاشونو د تنظیم کمېسیون غونډه د افغانستان د اسلامي امارت د ریاست الوزراء د اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي په مشرۍ او د یاد کمېسیون د غړو په ګډون جوړه شوه.

په دې غونډه کې د ۱۴۰۴ هجري شمسي مالي کال د تشکیل او پلان ترڅنګ د هرات، کندهار، جلال آباد، مزارشریف او کندز ښاروالیو د ښاري خدمتونو وړاندې کولو په اړه هر اړخیز بحث ترسره او په هکله یې لازم تصمیمونه ونیول شول.

## سوریه کې پر اسرائیلي اشغالګر پوځ وسلوال برید شوی

د اسرائیلو اشغالګر پوځ اعلان کړی، چې د دوي پر ځواکونو د سوریې د اشغال شوي ګولان په زون له نیولو د بشارالاسد رژیم له نسکورېدو وروسته لومړی ځل دي چې پر اسرائیلي صهیونیستي



قنیطره سیمه کې وسلوال برید شوي. دا د سوریې په خاوره کې د اسرائیلو د یرغل له پیل او د بفر پوځ وسلوال برید ترسره کېږي. د اسرائیلي اشغالګر رژیم پوځ زیاتوي چې برید... ۳مخ

## لوګر کې د فوټبال غوره لیګ سیالۍ پیل شوې

د لوګر د بدني روزنې او ورزش آمریت مسئولین وايي ،چې په دې ولایت کې د ۱۰ لوبډلو ترمنځ د فوټبال غوره لیګ سیالۍ پیل شوې دي.د دې ولایت د بدني روزنې او ورزش آمر انجنیر مزمل نعیم زي باختر آژانس ته ویلي، چې په دغه ولایت کې د فوټبال غوره لیګ سیالۍ د ۱۰ لوبډلو ترمنځ پیل شوي چې یوه میاشت بــه دوام وکړي.ده زیاته کړې چې لومړۍ لوبه د اتحاد لوګر او سنګ شکن لوبډلو ترمنځ ترسره شوې چې ... ۳مخ

## د اقتصاد وزارت:
## د افغانستان د کنګل شوې شتمنۍ په اړه د امریکا اقدام د منلو وړ نه دی




د اقتصاد وزارت د افغانستان د بیارغونې لپاره د امریکا د ځانګړې څارونکې اداري (سیګار) د تازه راپور په غبرګون کې د افغانستان د ۹ میلیارده کنګل شوې شتمنۍ پر خلاصون ټینګار کړی دی.سیګار د امریکا کانګرېس ته په خپل تازه راپور کې ویلي ،چې ښایي دغه هېواد په سویس کې اماني صندوق ته لېږدول شوې د افغانستان ۳،۵ میلیارده ډالره شتمني بیا کنګل کړي.د اقتصاد وزارت په یوه خبر پاڼه کې ویلي ،چې د افغانستان د کنګل شوې شتمنۍ د تخصیص، کارولو او لېږد په... ۳مخ

## تېره میاشت د وسپنې پټلۍ له لارې څه باندې ۴۰۰ زره ټنه انتقالات شوي




د ټولګټو وزارت وايي چې د روان کال په مرغومي میاشت کې، د هېواد د وسپنې پټلۍ له لارې ۴۰۸ زره ۸۷۶ متریک ټنه انتقالات ترسره شوي دي.باختر آژانس ته د ټولګټو وزارت د رسنیز دفتر د معلوماتو له مخې؛ په یاده موده کې د حیرتان وسپنې پټلۍ له لارې ۳۰۲ زره ۳۲۷ ټنه، د آقینې د وسپنې پټلۍ له لارې ۲۷ زره ۴۵ ټنه، د تورغونډۍ د وسپنې پټلۍ له لارې ۷۰ زره ۵۶۴ ټنه، د خواف – هرات د وسپنې پټلۍ له لارې اته زره ۹۴۰ ټنه چې ټولټال ۴۰۷ زره ۱۷۸ ټنه نفتي او نور توکي دي؛ هېواد ته وارد شوي او همدا رنګه، په دې موده کې ۱۶۹۸ ټنه تجارتي مالونه چې زیاته برخه یې وچه مېوه، کینو، وریجې او د انارو جوس دي، صادر شوي دي.د ټولګټو وزارت وايي چې... ۳مخ

## ۳۰۰ تن در رویدادهای ترافیکی در لوګر کشته و زخمی شدند

شماری از باشندګان لوګر، از افزایش رویدادهای ترافیکی در این ولایت نګرانی دارند. احمدشاه، باشنده شهر پل‌علم، مرکز لوګر می‌ګوید که



رویدادهای ترافیکی در شاهراه کابل-لوګر ماهانه ده‌ها کشته و زخمی بر جا می ګذارد.این باشنده لوګر، از آمریت ترافیک این ولایت می‌خواهد که برای کاهش رویدادهای ترافیکی اقدام‌های لازم را انجام دهد. ((در روزهای پسین رویدادهای ترافیکی به اندازه‌ای زیاد شده که هر روز یکی-دو رویداد در شاهراه کابل-لوګر رخ میدهد؛ سرعت موتر باید کنترل و مدرک‌های رانندګان بررسی شود، تا از افزایش رویدادهای ترافیکی جلوګیری شود.))وحیدالله، باشنده‌ولسوالی محمدآغه لوګر، می‌ګوید که بیشتر رویدادهای ترافیکی در این ولایت به دلیل تیزرفتاری و بی‌احتیاطی رانندګان رخ میدهد. او می‌افزاید: ((افراد بسیار کمسن رانندګی می‌کند؛ مدرک قانونی رانندګی را ندارند و به همین دلیل حادثه رخ می‌دهد؛ خواست ما این است که از افزایش رویدادهای ترافیکی جلوګیری کنند.))در همین حال، محمدنعیم زبیر، مدیر ترافیک فرماندهی امنیه لوګر، می‌ګوید که در یک سال ګذشته، ۱۲۹ رویداد ترافیکی در این ولایت رخ... ۳مخ

## د فراه د ځمکني ټرانسپورټ عواید زیات شوي

د فراه د ځمکني ټرانسپورټ د تنظیم ریاست مسئولین وايي، چې د روان کال په تېرو لسو میاشتو کې یې ۹۸ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي، چې د تېر کال په پرتله ۱۹ سلنه زیاتوالی ښيي.



د یاد ریاست رئیس مولوي سید احمد ساجد باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې د عوایدو د زیاتوالي اصلي عوامل په چارو کې روڼتیا او د فساد مخنیوی دي.د ده په وینا، سږکال د ترانسپورټ وزارت له لوري ۱۱۰ میلیونه افغانۍ ټارګېټ ټاکل شوی او دوی تر دې مهاله د غټو او کوچنیو مسافر وړونکو او باروړونکو موټرو د تمځایونو او تنظیم لــه لارې ۹۸ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي او د دولت خزانې ته یې سپارلي دي.مولوي سید احمد زیاته کړه، چې تېر کال دوي ته د ۶۰ میلیونه افغانیو ټارګېټ ټاکل شوي و، خو اوسني عواید د تېر کال په پرتله ۱۹ سلنه لوړ شوي دي.

## بلخ کې ۷ کلنه دښمني په دوستۍ بدله شوه

د بلخ په چمتال ولسوالۍ کې د دوو کورنیو ترمنځ ۷ کلنه شخړه د یوې غونډې په ترځ کې داسې مهال هواره شوه، چې پکې د یاد ولایت د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو ریاست د مسئولینو په مشرۍ، قومي مشرانو او دیني عالمانو ونډه لرله.دغه شخړه چې د ښکېلو لوریو له خوا د ځمکې د ملکیت پر سر راپورته شوې وه او ترمنځ یې د ژورو جنجالونو او اختلافاتو ترڅنګ ګڼ مالي زیانونه لرل وروسته له ۷ کلونو د اسلامي امارت د مشرانو په هلو ځلو حل او دواړه خواوې د ... ۳مخ

## پکتیا کې پر ۸۰ اړمنو کورنیو د خیاطۍ وسایل ووېشل شول

د پکتیا د کار او ټولنیزو چارو ریاست مسئولان وايي چې د مرکز ګردېز اړوند رباط او احمدابا ولسوالۍ کې ۸۰ اړمنو کورنیو باندې یې د خیاطي وسایل یا کېټونه وېشلي دي.د کار او ټولنیزو چارو رئیس محمدرحیم نصرت وویل، چې د خیاطي یاد کېټونه د کار او ټولنیزو چارو ریاست تر څار لاندې د(DAWEO) موسسې په مالي ملاتړ اړمنو کورنیو ته وېشل شوي دي.ده زیاته کړه ،چې... ۳مخ

## عربي هیوادونو له غزې څخه د فلسطینیانو د اېستلو په اړه د ټرمپ له وړاندیز سره مخالفت وکړ

شپږو عربي هېوادونو (قطر، مصر، متحده عربي اماراتو، سعودي عربستان، اردن او فلسطین) د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ له هغه وړاندیز سره مخالفت کړی، چې له غزې څخه د فلسطینیانو د ایستلو غوښتنه پکې شوې ده.د یادو هېوادونو د بهرنیو چارو وزیرانو په یوه ګډه اعلامیه کې ویلي، چې دا ډول پرېکړه به سیمه بې‌ثباته او شخړې به لا پسې زیاتې کړي او د سولې او ګډ ژوند هیلې بــه کمزورې شي.پــه دې اعلامیه کې دغه‌راز د نړیوالې ټولنې د همغږو هڅو پر اهمیت ټینګار شوي، تر څو د غزې تړانګه په داسې بڼه بېرته ورغول شي، چې پخپل ټاټوبي کې د فلسطینیانو د پاتې کېدو ضمانت وکړي.




## میدان‌وردګو کې د ۵۰ لوبغاړو ترمنځ د غشي ویشتلو سیالۍ وشوې

د میدان‌وردګو د بدني روزنې او ورزش آمریت چارواکي وايي چې د غشي‌وېشتلو فدراسیون لـه لوري د یاد ولایت په چک ولسوالي کې د ۵۰ غوره لوبغاړو ترمنځ د غشي‌وېشتلو سیالي پای ته ورسېدې.د میدان‌وردګو ولایت له مقام څخه رسنیو ته په لېږل شوي خبرپاڼه کې راغلي ،چې دغه سیالي



د غشي‌وېشتلو ورزش ته وده ورکول او د ځوانانو ترمنځ ښې اړیکې او تجربې رامنځته کول وو.د ورکړل شویو معلوماتو له مخې، دغه سیالي د ولایت په کچه جوړې شوي او یوه ورځ یې دوام وکړ.د غشي‌وېشتلو سیالیو ورزشکارانو د بدني روزنې او ورزش آمریت څخه غواړي چې یاد ورزش ته وده ورکړي او ورزشکارانو ته ښه فرصتونه برابره کړي.